وَأَتِمُّوا الْحَجَّ وَالْعُمْرَةَ لِلّٰه (الاية)

# آسانه عمره

تالیف : مفتی عبدالرؤف سکهروی مدظله

ترجمه او زیاتوب

الحاج مولوی عبدالحنان دیوبندی

ترتیب او بیاکتنه : قاری عبدالصمد شهیدزاده

المدرسة العربية الاسلامية هلمند لشکرگاه

# دمضامینو فهرست

بسم الله الرحمن الرحيم

الحمد لله رب العلمين والصلوة والسلام على رسوله خير خلقه سيد المرسلين ورحمة للعالمين وعلى آله وصحبه اجمعين.

## عمره څه ته وايي؟

عمره په لغت کښې زيارت کولو ته وايي او په شريعت کښې دميقات(داحرام دتړلو دځايه ) څخه احرام تړل پر کعبې شريفي

باندي طواف كول او د صفا اومروه په مينځ كښې سعى كول دي ته عمره وايي .

(الفقه الاسلامي وادلته / الدرالمختار مع ردالمحتار )

## حج اصغر

عمرې ته حج اصغر (كوچنى حج) هم وايي هغه كسان چي دعمرې كولو استطاعت او طاقت ولري دهغوى لپاره په ټوله ژوند او عمر كښې يوځل عمره كول سنت مؤكد عمل دى او ځيني علماء بيا وايي چي واجب عمل دى .

په احاديث مباركه وو كښېږ دعمرې ډېر فضيلتونه راغلي دي خصوصا په روژه كښې عمره اداء كول دهغه حج سره په ثواب كښې برابره ده كوم چې دنبي كريم صلى الله عليه وسلم په ملګرتيا كښې اداء سي.

## دعمرې احرام

داحرام تياري : دسر وېښته به جوړ کړې ، بريتونه به كوچني کړي ، دنامه ښخه لاندې

وېښته او دبغلونو وېښته به صفا کړي (غنية)

**غسل :** داحرام په نيت سره به غسل وکړي که غسل ممکن نه وو نواودس به وکړي (غنية)

**داحرام څادرونه :** کله چې دي غسل وکړی نو نارينه دي يو سپين پټو او څادر لنګ کړي او دوهم سپين پټو دي پر ځان واچوي څپلۍ دي وباسي عام چمپل يا داحرام چمپل دي په پښو کړي ، او که چيري احرام ترونکی کس ښځه وه نودي هغه خپل

مخصوص احرام وتړي (ټوله بدن دي پټ کړي فقط دي مخ نه پټوي البته که نارينه په مخه ورتلله پرده دي ځيني کوي يعني پوړنی دي پر مخ راايله کړي خو دمخ دپوستکي څخه دې نه مبلوي ښه طريقه داده چي ښځي داحرام په حالت کښې هغه پيک داره خولۍ پر سرکړي او بيا دي پوړنی ور سره پر سرکړي هم به يې پوړنی دمخ څخه نه مبلي او هم به يې پر ده دنارينه وو څخه وي.

**(دحجاجو تحفه صفحه ۴۳ / دعمرې اسانه طريقه صفحه ۱۹ اردو)**

**نفل لمونځ** : په پټ سر سره به دوه رکعته لمونځ وکړې ........... په هوايي جهازاو طياره کښې دسفر کولو په وخت کښې مناسبه همداده چي په طياره کښې احرام وتړل سي ..... معنی داچي نور ټوله کارونه مثلا غسل کول ، صفايي کول اودس کول نفل کول دا کارونه دي په کور او ميدان کښې تر سره سي او کله چي

طیاره هوا ته پورته سوه په هغه وخت کښې دي نیت وکړي او تلبیه دي ووایي ۰

**نیت** : اوس به د احرام څادر د سره څخه لیري کړې او داسي نیت به وکړې :

الهي زه ستا د رضا لپاره دعمرې اراده کوم ای الله ته يې زما دپاره اسانه کړې او را څخه قبوله يې کړې بیا دي لاندي تلبیه ووایي ۰

**تلبیه شریفه:** ( لَبَّيكَ اللّٰهم لَبَّيكَ، لَبَّيكَ لَا شَرِيكَ لك لَبَّيكَ، إنَّ الحمدَ والنِّعمةَ لك والمُلْكَ، لَا شَرِيكَ لك )

**دعا** : ددې څخه وروسته دې درود شریف ووايي او دغه دعا دې وکړي : ای الله جل جلاله زه ستا رضا او جنت غواړم او ستا دناراضۍ او دوږخ څخه پنا غواړم ای الله جل جلاله کومې دعاګانې چې پر دغه موقع باندې نبي کريم صلی الله عليه وسلم کړې دي يا يې امت ته ښوولې دي زه هغه

ټولي غوارمه او هغه ټولي زما د طرفه څخه قبولي کړې .

**داحرام پابندياني** : څنګه چي دي نيت وکړی او تلبيه دي وويله نور پر تا باندي داحرام پابندياني ولګيږي مثلا عطر لګول ، ګنډلي جامي اغوستل ، سر پټول ، پښي پټول ، وېښته شکول ، يا خريل و دخپلي ښځي سره نژديکت کول ، هر بې ځايه او دګناه عمل کول ، جنګ کول چاته ښکنځل کول وغيره داهغه کارونه دي چي په احرام کښې يې کول حرام دي .

**دمکې معظمې سفر** : کله چي د حرم شريف طرف ته دغه مبارک سفر شروع سو د سفر په دوران کښې به تلبيه ډېره زياته وايي .

**( حيات ، غنية )**

**مکه معظمه** : تلبيه به ښه په ذوق او شوق سره وايې مکې معظمې ته به داخل سي

**وحرم شريف ته حاضري** : کله چي مسجد حرم ته داخلېدلې نو به دزړه دکومي ښخه په ډېر ادب سره اول راسته قدم کښېږدي

او دغه دعا به ووايي. (بِسمِ اللّٰه والصَلوةُ والسلامُ علَى رسولِ اللّٰهِ رَبِّ اغفرلِي ذُنوبِي وافتح لِي ابواب رحمتک)

نور به داعتکاف نيت وکړي او بغير دد ي ثخه چي چا ته تکليف ورکړي مخ ته به روان سي (غنية)

## کله چي دي اول ځل کعبې شريفي ته وکتل:

**وکتل**: کله چي دي نظر پر بيت الله شريفي ولګيدی نو دعامي لاري ثخه به يو ثنګ

ته ودرېږې او دغه کلمې به ووايې : اَللّٰه اکبر درې واره لَا اِلَٰهَ اِلَّا اللّٰهُ درې واره بيادواړه لاسونه ددعا لپاره پورته کړه درود شريف ووايه او بيا دې ډيري دعاګانې وکړه ځکه چې دا د دعاګانو دقبوليت خاص وخت او خاص ځای دی.(غنية)

## طواف

**دطواف تياري** : اوس به داحرام پټو واخلې تر راسته اوږه به يې وباسې او پر چپه اوږه به يې واچوې او راسته اوږه به دې

دطواف تر اخره پوري لڅه وي او طواف په
اوداسه سره کول ضروري دی .

**دطواف نیت** :ددې څخه وروسته به
دکعبې شریفي مخ ته پر هغه خوا پر کوم
طرف چي حجر اسودلګېدلی دی داسي
ودرېږې چي ټوله حجر اسود ستا راسته
طرف ته راسي او پر دغه ځای بې له دغه
چي لاسونه پورته کړې دطواف نیت به
داسي وکړي .... ای الله جل جلاله زه ستا
درضا دپاره دعمرې طواف کوم ای الله جل

جلاله ته یې راته اسانه کړې او راځخه قبوله یې کړې . (**حیات**)

ددې ځخه وروسته به مخ پر کعبه راسته طرف ته وګرځې او حجر اسود ته به مخامخ ودریږي او دواړه لاسونه به د غوږونوتر نرمکیو پوري پورته کړي او د ورغوو مخونه به د حجراسود طرف ته کړي اود غه الفاظ به ووایي :

بِسمِ اللّٰہِ اَللّٰہُ اکبرِ وَ لِلّٰہ الحَمَدُ وَالصَلوٰةُ والسَلامُ عَلَی رَسُولِ اللّٰہِ (**غنیة**)

بيا به دواړه لاسونه ايله کړي

**استلام** : دحجر اسود استلام به کوي يعني په لاس به يې مسه کړي که هغه ممکن نه وو نو به اشاره ورته وکړي او دغه دعا به ووايي بِسمِ اللّٰه اَللّٰه اکبر و للّٰه الحمد والصلوة والسلام علٰى رسول اللّٰه (**غنية**) اوبيابه داشاري څخه وروسته دواړه لاسونه مچ کړي.

**دطواف شروع** : دحجر اسود تر مچولو یا اشارې کولو وروسته به وګرځي طواف به شروع کړي .

**خبرداری** : پرحجر اسود او رکن يماني ، او ملتزم شريف باندي اکثر وختونه عطر او خوشبوياني لګېدلي وي نو ځکه داحرام په حالت کښې هغوی ته لاس وروورل نه دي پکار يو څه چي ليري ځيني اوسې ښه به وي که نه نو د دم لازمېدلو خطره سته .

**تاكيد** : دحجر اسود دمچولو يا دهغه طرف ته داشاره كولو څخه علاوه دطواف په دوران كښې دكعبې شريفې طرف ته سينه كول يا شا ور ګرځول جائز او رواه عمل نه دی ددې خبرې خاص خيال ساتل پكاردي .

**رمل** : دطواف په اول درو شوطونو كښې به داسې رفتار كوې چې لويې ته ورته انداز وې اوږې به ښوروې قدمونه به نژدې نژدې ايږدې يو څه به تيز تيز تګ

کوي دغي طريقې ته رمل وايي او دامستحب عمل دی . (**حيات**)

**رکن يماني** : دطواف کولو په دوران کښې چې کله رکن يماني ته راغلې نو پر هغه باندې به دوارہ لاسونه يا راسته لاس ولګوې او دغه دعا به وکړې او دا دعا به په هر شوط کښې درکن يماني سره وايې (رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنيا حَسَنَةً وَفِي الآخِرَةِ حَسَنَةً وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ وَ اَ دخِلنا الجَنَّةَ مع الأبرَارِ ياعَزِيز يا غَفَّار يارَبَّ العَالَمين) **کله چې دي**

**استلام :** اول شوط طواف پوره کړئ که چیري په اسانۍ سره د حجر اسود استلام ممکن وو وبه یې کړې که نه نو اشاره به ورته وکړې او لاسونه به مچ کړې (**حیات**)

**طواف ختم :** کله چي دي اوه شوطه طواف پوره کړی اتم ځل به بیا د حجر اسود استلام یعني لاس وروړل وکړې یا به اشاره ورته وکړې نور به طواف ختم کړې .

**اضطباع موقوف** : اوس به نو پټو د چپه اوږې څخه لیري کړې دواړې اوږې به پټې کړې . (**غنية**)

**ملتزم شريف ته تلل** : ملتزم شريف ته به راسې (ملتزم شريف دكعبې شريفي د دروازې او حجر اسود تر مابين چې كوم دېوال دى هغه ته وايي كوم ځاى ته چې نژدې عسكر همېشه ولاړ وي ) او دهغه ځايه سره به ځان ومښلوي او ډېرې دعاګاني به وكړې په دې شرط چې عطر نه وي باندې لګېدلې .

**مقام ابراهیم** : ددې ځخه وروسته به د مقام ابراهیم شاته په لڅ سر سره دوه رکعته دطواف واجب لمونځ اداء کړې او دعاګاني به وکړې .

**زمزم چیښل** : ددې ځخه وروسته به دزمزم اوبه وچیښې ښه ډیري به وچیښي او دا دعا به وکړې : ای الله جل جلاله زه ستا ځخه نفع رسوونکی علم ، فراخه روزي ، او دهري مریضۍ ځخه شفا غواړم . (**معلم الحجاج**)

**نهم استلام دسعي دپاره:** اوس به نو بیا دصفا او مروه دسعي او ځغستا لپاره دحجر اسود استلام یا اشاره وکړي او دصفا طرف ته به روان سي اوسعي په اوداسه سره کول سنت ده (**حیات**)

**دصفا دسعي شروع** : دصفا پر غونډۍ به مخامخ کعبې شریفي ته داسي درېږي چي کعبه شریفه معلومیږي او دسعي نیت به وکړي : ای الله جل جلاله زه ستا درضا لپاره دصفا او مروه تر مینځ سعي کوم دا زما لپاره اسانه کړې او راڅخه قبوله یې

کړي (**حیات**) ددې ځخه وروسته به حمد او ثنا ووایې او دعاګاني به وکړې .

**دمروه طرف ته روانېدل** : دصفا ځخه چې راکښته سوې دمروه طرف ته به روان سې کله چې زرغونو ګروپانو ته نژدې سوې نو نارینه حضرات دې ددغه زرغونو ګروپانو په ساحه کي ځغلي خو ښځې دې نه ځغلي او دغه دعا دې کوي ( ربِّ اغفِر وارحم اَنت الاَعزُّ الاَکرم)

**مروه ته چي ورسېدې** : مروه ته چي كله ورسېدې نو مخ پر قبله به ودرېږې دعاګاني به وكړې دغه يوشوط سعى سوه بيا ترصفا پورې بل شوط سعى كيږي .

**دسعي ختمول** : پر دغه طريقه باندي پر اووم شوط باندي سعي ختمېږي پـه هر شوط كښې به دزرغونو ميلانو تر مينځ نارينه ځغلي او ښځي به نه ځغلي (**عمدة المناسک**) .

**دشكرانې نفل** :دسعي تر ختمولو وروسته كه مكروه وخت نه وو نو به دشكرانې دوه ركعته نفل په حرم شريف كښې اداء كړې . (**حيات ، غنية**)

**حلق يا قصر** : دصفا او مروه دسعي څخه وروسته به نارينه خپل ټول سر وخريي يا دي يې په ماشين سره كوچنى كړي او ښځې دي دخپل ټول سر دوېښتيانو څخه دلاس دګوتي د يوه بندداندازې څخه څه زيات وېښته غچي كړي او دايقين به كوي

چي کم تر کمه د سر د ثلورمي حصې وېښته يې پرې سوي دي .

**خبرداری** : پر مروه باندي چي کوم کسان ولاړ وي غچياني ورسره وي فقط يو ثو وېښته غچي کوي په هغوی باندي وېښته غچي کول د حنفي مذهب د احرام تړونکي حاجي او معتمر دپاره کافي نه دي لهذا د هغوی ثخه پر هېز پکار دی.

**عمره مکمل سوه** : د سر تر خريلو يا کوچني کولو ثخه وروسته ستا عمره

مکمله سوه اوس نو داحرام پابندیاني
ختمي سولې نور به کالي واغوندې او
دکور په شان به عادي ژوند کوې په زړه او
خوله سره به دالله جل جلاله شکر اداء کوې
چي هغه مهربانه ذات تاته دعمرې سعادت
دروبخښی نور به دژوند پاته وخت په رضا
کښې تېروې او وخت به په لایعني او
فضول شیانو خصوصا په بازارونو او
مارکېټونو کښې په سیل او منظرې سره نه
تېروې ۰

**نفلي طواف** : اوس نو ته اختيار لرې هر وخت چي عمره کوې کولای يې سې پر هغه طريقه چي لوړه بيان سوه او که فقط طواف کوې نو طواف کوه مشکل نه لري البته په خالي طواف کښې احرام ، رمل ، او اضطباع او دصفا اومروه تر مينځ سعی نسته .

## دمدينې منورې زيارت

**دمدينې منورې دسفر نيت** : کله چي تاسي د مدينې منورې دښار سفر شروع کړی نو

نیت به داسي وکړي : ای الله جل جلاله زه دسردار دو عالم صلی الله علیه وسلم دمبارکي روضې دزیارت لپاره دمدینې منورې سفر کومه ای الله جل جلاله ته يې راته اسانه کړې او راځخه قبول يې کړې (**عمدة المناسک**).

**دسنتونو خیال ساتل** : د مدینې منورې په سفر کښې به پر سنتونو باندې دعمل کولو خاص خیال ساتې

**درود شریف** : په دغه مبارک سفر کي به درود شریف ډېر او په کثرت سره وایې .

**په مدینه منوره کښې** : د مدینې منورې دابادۍ او ښار په لیدو سره به خپل شوق او ذوق نور هم لا زیات کړې او ښه ډېر درود او سلام به وایې په عاجزۍ سره به ودې مقدس ښار ته داخلیږې .

## مسجد نبوي ( صلي الله علیه وسلم )

کله چي ښه په خیر او خیریت سره ورسېدې نو خپل سامانونه به په خپل

وطاق كښېږي سره ځاى پر ځاى كړي غسل
به وكړي كه څه عذر وودغسل كولو څخه
نو اودس به وكړي ،ښه لباس به واغوندي ،
عطر او خوشبويي به ولګوي او په ډېر ادب
او احترام سره به ددرود شريف دويلو سره
دمسجد نبوي وطرف ته روان سي .

**باب جبرئيل** : ښه خو داده چي دباب
جبرئيل يا باب السلام څخه مسجد نبوي
ته داخل سي كه نه نو دهري دروازې څخه
چي داخل سي پروا نستها و دغه درود او
دعا به ووايي .

( اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ عَلٰى آلِ مُحَمَّدٍ وَصَحْبِهٖ وَسَلِّمْ ، اَللّٰهُمَّ اغْفِرْلِي ذُنُوْبِي وَافْتَحْ لِي اَبْوَابَ رَحْمَتِکَ )

**راسته پښه** : په ډېر ادب سره به راسته پښه کښېږدي او د نفلي اعتکاف نيت که وکړي نو ډېر به ښه وي .

**نفل لمونځ** :که چيري مکروه وخت نه وو داخل نو به په رياض الجنة مقام کښي د نبي کريم صلى الله عليه وسلم د محراب

مبارک سره او که هلته ځای نه وو نو هر
ځای چي وي په مسجد نبوي کښي هلته به
دوه رکعته تحیة المسجد لمونځ اداء کړي
او بیابه دزړه او خولي څخه دالله جل جلاله
حمد او ثنا بیان کړي دعاګاني به وکړي او
توبه به وباسي . (**حیات**)

## پر روضې مبارکي باندي حاضري :

اوس به نو په ډېره خشوع ، خضوع او
عاجزۍ سره او په ډېر ادب او احترام سره
دروضې مبارکي طرف ته روان سي اود

روضې مباركي دجاليو مخ ته به داول سوري څخه درې يا څلور شرعي ګزه پر فاصله باندي ودرېږې او خپل نظر به کښته کړې (**حيات**)

**درود او سلام** : او په درميانه اواز سره به داسي سلامونه عرض کړې.

اَلصَّلَوٰةُ وَالسَّلَامُ عَلَيکَ يارسولَ اللّٰه

الصَّلَوٰةُ وَالسَّلَامُ عَلَيکَ يانَبِيَّ آللّٰه

اَلصَّلَواةُ وَالسَلَامُ عَلَيکَ يَاحَبِيبَ اللّٰه

**دعا** : ددې څخه وروسته به دنبي کريم صلی اللّٰه عليه وسلم څخه دشفاعت درخواست او غوښتنه وکړي اودرې واره به دغه الفاظ ووايي . اَسئَلُکَ الشفاعة يارسولَ اللّٰه

او دنبي کَريم صلی اللّٰه عليه وسلم په توسل او وسيلې سره به دعاګاني وکړي په کومو کښې چي د ښه خاتمې او د اللّٰه

تعالى جل جلاله درضا او دهغه دمغفرت غوښتني وي (**غنية**)

**دنورو كسانو سلامونه** : ددې څخه وروسته به دهر هغه شخص ، دوست عزيز ، اوملګري سلامونه و نبي كريم صلى الله عليه وسلم ته داسي عرض كړې (السلَام عَلَيکَ يارَسُولَ اللّٰه من فُلَان بن فُلَان ) دفلان بن فلان پهَ ځاى كښېي دهغه شخص نوم سره دپلار دنومه واخله كوم

چي تاته سلامونه درکړي وي او يا يې ته دهغه دطرفه څخه خپله وايې .

**پر صديق اکبر رضي الله عنه باندي سلام :**

ددې څخه وروسته به دراسته طرف په جاليو کښې د دوهم سوري مخ ته ودرېږې او داسي سلام به پېش کړې .

(اَلسَّلَامُ عَلَيکَ ياخَلِيفَةَ رَسُولِ اللّٰه جزاکَ اللّٰهُ عَن اُمَّةِ مُحَمَّدٍ خيرا)

## پر حضرت عمر فاروق رضي الله عنه باندي سلام :

ددې سلام څخه وروسته به يو څه نور راسته طرف ته راسې ددريم سوري مخ ته به ودرېږې او داسې سلام به عرض کړې (اَلسَّلَامُ عَلَيکَ يَا اَميرالمؤمنين عمر الفَارُوق جزَاکَ اللّٰهُ عَن اُمَّة مُحَمَّد خيرا) ددې څخه وروسته به يو څه چپه طرف ته وښکېږې د دواړو حضراتو تر مينځ به ودرېږې پر دواړو خلفاوو باندې به

سلام ووايې ( اَلسَلَامُ عَلَيكُمَا يَا وَزِيرَي رَسُولِ اللّٰه جَزَاكُمَا اللّٰهُ اَحسَن الجَزَاءِ)

**بيا دَنبي كَريم صلي الله عليه وسلم په خدَمت كښې :**

ددې څخه وروسته به يو څه نور چپه طرف ته ولاړ سي داول سوري مخ ته به بيا راسي او په ډېر ذوق او شوق سره به دنبي كريم صلى الله عليه وسلم په حضور كښې درود شريف او سلام پېش كړي دكومو الفاظ چي مخكي ذكر سول او بيا به دځان

دپار دخپل اولادونو دپاره او دخپل مور او پلار دپاره او دعامو مسلمانانو دپاره دعاګاني وکړې (**حیات**)

**دعا**: ددې ځخه وروسته به په مسجد نبوي کښې وداسې ځای ته ولاړ سې چې کله ته مخ پر قبله کښېنې شا دې وروضې شریفې ته نه وي او الله تعالی جل جلاله ته به ډېر وژاړې او دعاوې به وکړې ،،، او په آینده کښې دسلام پیش کولو طریقه هم دغه ده کومه چې لوړه بیان سول.

**څلوېښت لمونځونه** : نارينه کسان دي په
مسجد نبوي کښې څلوېښت لمونځونه په
جماعت سره اداء کړي البته ددغه
څلويښتو لمونځونو پوره کول ضروري نه
دي مستحب کار دی

**مسجد قبا** : دشنبې په ورځ چي کله وخت
پيدا کړئ په مسجد قبا کښې دوه رکعته
نفل لمونځ اداء کړئ په دې شرط چي
مکروه وخت به نه وي دغه دوه رکعته
لمونځ ديوې عمرې برابر ثواب لري .

**جنت البقیع هدیره** : کله کله جنت البقیع
هدیرې ته هم ورځئ هلته دنیکو اعمالو
ایصال ثواب وکړئ دعا ګاني وکړئ او په
هغه ځای کښې چي کوم صحابه کرام
رضي اللّٰه تعالی عنهم او نور ددین بزرګان
ښخ دي دهغوی په وسیله سره دعاګاني
دخپل ځان او نورو مسلمانانو دپاره وکړئ

**دمدینې منورې څخه واپسي** : کله چي
تاسي دمدینې منورې څخه واپس ځئ نو
په هغه مخکنۍ طریقه سره وروضې
شریفي ته حاضري ورکړئ سلامونه پیش

کړئ او پر دغه جدايي باندي ډيري اوښکي توی کړئ او د دوهم ځل دحاضرۍ او ملاقات په طمع دحسرت او غم سره واپس روان سئ.

**تم بعون الله تعالي ومدده وصلي الله تعالي علي النبي الکريم محمد وآله واصحابه اَجمعين .**

**۱۴۳۸ / ۲۱ ربيع الاول**

# هغه اوراد او اذکار چي دطواف په دوران کښې یا په عامو اوقاتو کښې ویل کیږي

**اول** : سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ عَدَدَ خَلْقِهٖ، وَرِضَا نَفْسِهٖ، وَزِنَةَ عَرْشِهٖ، وَمِدَادَ كَلِمَاتِهٖ (الدعوات الکبیر للبیهقی)

**دوهم** : سُبْحَانَ اللّٰهِ وَبِحَمْدِهٖ، سُبْحَانَ اللّٰهِ الْعَظِيمِ (الدعوات الکبیر للبیهقی)

**دريم**: أَستغفر اللّٰه الَّذي لَا إِلَه إِلَّا هُوَ الْحَيُّ الْقَيُّومُ، وأَتُوبُ إِلَيْهِ

(الدعوات الكبير للبيهقى)

**خلورم**: سبحان اللّٰه، والْحَمْدُ للّٰه، ولَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰه، واللّٰه أَكْبَرَ (الدعوات الكبير للبيهقى)

**پنځم**: لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا باللّٰه

(الدعوات الكبير للبيهقى)

**شپږم** : لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ، وَحْدَهُ لَا شَرِيكَ لَهُ، لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ، وَهُوَ عَلَى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيرٌ (الدعوات الكبير للبيهقی)

**اووم** : رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً، وَفِي الْآخِرَةِ حَسَنَةً، وَقِنَا عَذَابَ النَّارِ

(الدعوات الكبير للبيهقی)

# درخواست

دټولو هغه عمره کوونکو شخه کومو چي دغه کتاب دعمرې دزيارت دپاره لوستی دی مؤدبانه درخواست کوو چي په خپلو دعاګانو کښې دکتاب مؤلف او ژباړه کوونکی او معاونين حضرات په خپلوخاصو دعاګانو کښې ياد کړئ الله جل جلاله دي ستاسي مناسک پر خپل دربارقبول کړي . امين

# صبر سياحتي او زيارتي شركت

صبر سياحتي او زيارتي شركت خپلو هيواد والو ته دحج او عمرې غوره خدمتونو وړاندي کوي .

دغه مختصره او اسانه دعمرې مناسک دصبر سياحتي او زيارتي شركت دطرفه څخه وړيا وحجاجو او معتمرينو ته وركول کيږي .